



# کندهار



دهیواد په شمالي ولایاتو کې همایوني معظم اعلیحضرت د دورو ستې
سفر په لړ کې هغه وخت چې شاهانه ذات د مزار شریف
د فابریکې د کار جریان گوري

کندهار

د ۱۳۴۹ لمریز کال د ژمري میاشت

# د عصر غوښتنه

څرنګه چې په ژوندکی کار او فعالیت ملګری دی نو ځکه په ژوندکی بدلون او تحول هم راتلونکی دی .

دانسانی ټولنو مطالعه دا موږ ته راښیي چې د زمانو د تیریدو سره سم دانسانی ژوندانه څونه هم د کمیت او هم د کیفیت په لحاظ څرګند تحولونه منلی دی پدې کی شک نشته چې زمانی بدلون له آغاز څخه بیا تر انجام پوری په غیږ کی نیولی دی او د زمانی هر حال پر انسانی سرنوشت حاکمیت درلودلی دی .

خو داچې داجتماعی تغیراتو او د زمانی د تحول له امله د یوی ټولنی تمایل د تجدد و خواته شی نو دلته هوښیارو کسانو او د جامعی هر فرد ته په کار ده چې د زمانی نوی ایجابات ومنی او د هغه ایجاباتو په محیط کی خپل د ژوند کاروان وابیږدوی .

که چیری د یوی ټولنی افراد وخت له پیژندونکی او د زمانی له طبیعی سنت څخه بی خبره وی یا داچې د خپلو پوهانو او لار ښوونکو ته د زړه له کومی غوږ نه نږدی نو دهغی جامعی ژوند به هم د کړاونو او ازراز بدبختیو سره مخامخ وی که څه هم په لوی سرکی د زمانی سنت چې په اجتماعی ژوندکی تحول راوستل دی خامخا د ټولنی له خوا منل کیدونکی دی او د نه منلو په صورت کی به د ژوند له بقا څخه لاس مینځی .

څرنګه چې دانسان په خټه کښی حب ذاتی اخښل شوی دی او بیا هم دی د طبیعی قانون څخه انحراف نه شی کولای د ژوند دښا دیو په نیت دخپل انسانی فطرت د څرګندولو په غرض ناچار دی چې ژوند ته ادامه ورکړی او د زمانی هر ډول تحول او تجدد ومنی خو د مطلب خبره داده چې هوښیار کسان یا پوهی جامعی پر خپل وخت د زمانی د تحول آهنګ اوری او د کاروان مخه د ژوند و نوی لاری ته را اړوی لیکن برعکس ناخبره او د زمانی له طبیعی سنت څخه ناپوه کسان د ژوند پر هغه لار او لیکه روان وی چې هغه ډیره پخوا د اجتماعی ژوند د کاروان له خوا متروکه شوی وی او

زور نو څوک پر هغه لاره باندی تګ راتګ نه کوی کومی جامعی چې د وخت رنګ بدل وویني نو دوی هم سمدستی ورسره خپل لوښی الیشوی او د زمانی د اړتیا سره سم دخپل ژوند د آسانتیا وسایل راغونډوی او د عصر د اقتضا آتو سره برابر دخپل ځان کورنی او ټولس غم خوری او پر هغه استقامت حرکت کوی چې دانسانی ژوند بقا په کښی مضمره وی .

اوس به راسو دې خبری ته چې موږ په حیث د یوه قوم د ژوند په کوم حالت کی یو آیا موږ د زاړه ژوند څخه د نوی ژوند په لوری څومره خوځیدلی یو آیا موږ یوه پاتی جامعه یو او که مترقی هیواد یو؟

پدې کی شک نشته چې زموږ هیواد یو وروسته پاته مملکت دی او دڅو پیړیو راهیسی چې په دنیا کی نوی نهضتونه راروان شویدی موږ له هغو څخه استفاده نده کړی او د ژوند چاری مو د پخوا په شان پر زاړه حالت پاته دی .

اوس چې مو د ژوند قافله د ګران ټولواک په اراده په خوځیدو راغلی ده نو موږ ته ښائی چې د هغی سره په کلک عزم او ټینګه اراده ملګرتیا وکړو او تر ټولو مخه د عصر اړتیاوی وپیژنو او د جهان د مادی او معنوی ژوند د انکشافاتو څخه ځان خبر کړو .

دامتیاز خاوند : دطلوع افغان نشراتی مؤسسه
مسئول مدیر: زلمی (بارک)

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی

اداره: دشهیدانو واټ

دتاسیس کال ۱۳۳۹

دیوولسم کال پنځمه ګڼه

پرله پسی ګڼه ۱۱۹

کالنی بیه

په کندهار کی [۲۸] افغانی

دهیواد په داخل کی [۳۲] د

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

دزمری میاشت

۱۳۴۹ لمریز کال

## ددې ګڼې مضامین



دکندهار دولتی مطبعه

# عالی انسان دیو ستر هدف

## «د پاره تلاش کوی»

که د ژوند په ډګر کښې د هر ژوی او ساکښ مجادله د دې د پاره ده چې ژوندی پاته شی او خپل ژوند ته دوام ورکړی خو حضرت انسان

چې د خپل لوړ فکر او عالی قوت په برکت اشرف د مخلوقاتو دی او تر نورو مخلوقاتو برتری لری نو دده کوښښ، مجادله او تلاش یواځې

د ژوندی پاته کیدو د پاره نه دی بلکه په نړیه کی د انسانی پرمختګ، مادی او معنوی ژوند د سمون، بشری نیکمرغۍ او هوساینی د عالی

نصب العین او لوړ هدف لپاره تلاش کوی او په دغه لار کی علمی او تخنیکی وسایل په کار اچوی او خپل ځان بریالیتوب ته رسوی.

په حقیقت کی د انسان او نورو ساه کښانو او ژوندی موجوداتو ترمنځ ستر تـو پیر او امتیاز دادی چې انسان د خوراك، څښلو، خوب او داسې نورو لارو نه یواځې خپل مادی ژوند ساتی خو د معنوی فضیلت، اخلاقی ښیګڼو،

لوړو عصری کمالاتو خاصلو لو د بشریت د خدمت د لاری د انسانیت د عالی مقام ګټلو د پاره کار کوی او په ژوند کی تل نورو همنوعانو ته سمه لار ښوونه کوی، د هغو لاس نیسی، د بدبختی

څخه ئې راګرزوی، د هرچا مدنی، فردی او اجتماعی حقوق محترم شمېری، خپله ګټه د بل چا او د هیڅ همنوع په زیان او شر کی نه لټوی

په چا پسې تور او تهمت نه تړی سپکی او بی ځایه خبری نه پسې کوی د تبعیض او تعصب څخه کار نه اخلی، بدنیتی او بدګمانی د ځانه لیری کوی، هرچاته د اعتماد او احترام په سترګه ګوری، د انسانانو سره مینه خوا خوږی او صمیمیت لری او کوښښ کوی چې ژوندته د دغی لاری نه دوام ورکړی.

هو، پوه او ستر انسان د ژوند انه په ډګر کی د یوه عالی او ستر مرام د پرمختیو لو لپاره تلاش کوی، ژوند د خپل ځان، خپلی کورنی همنوع او هیوادوالو د ژوند د سمون او لوړ ید و د پاره سرته رسوی د نورو چو پړ وهی او د یوه

دردمند انسان او فضیلت د خاوند په څیر د نورو د خوښی، هوساینی او نیکمرغی حاصلو لو د پاره ژوند کول غواړی.

د عالی انسان خبری او عمل زړه او خوله یو شی وی څه چې په خوله وایی همغسی کوی او څه چه کوی هغه یی د لوړ فکر، انسانیت او اجتماعی اخلاقو نتیجه وی، آر خبر و ئې ښه عمل او ګټور کارونه پیروی، خپلو دینی مقدساتو ملی نوامیسو او ولسی سننو ته د تقدس او لوړ احترام په نظر ګوری.

عالی انسان ځان همنوع او ټولنی ته په نړی کی د مینی، ورورۍ، ملی اتحاد، ګډی همکاری او د هر ډول تعصب، بدبینی او کرکی نه لیری

ښکلی جهان جوړوی او په دغسی ښکلی نړۍ کی د ټولو هیوادوالو د نیک مرغی او هوسا ینی دپاره زیار باسی.

هو! انسانی ژوند یوې آبرومندی او شرافتمندانه مجادلی ته گردی، یوه داسی سپیڅلی مجادله چی بشریت د مدنیت ، ارتقا او سولی

خوا ته بیایی ، د لویدو ، بدبختی او پریشانی څخه ئی راگرځوی او د ژوند لوړ مدارج او حقیقی لذتونه ور په برخه کوی.

نو ته هم ای گرانه انسانه! راسه خپل بشری شرافت او ذاتی کرامت وساته او د یوه متدین ، منور او مترقی انسان په څیر د ځان او نورو د خوشحالی ، اجتماعی او

فردی ښیگڼی ، ملی نیک مرغی هیواد د سمسورولو او لوړتیا دپاره ژوند ته دوام ورکړه او په ژوند کی داسی ښی لاری چاری او غوره وسیلی ولټوه

چی د هغه له کبله هم ستا عالی مقام او لوړ کرامت خوندی سی او هم نور انسانان آرام او خوښ سی.

نن چی زموږ مهربانه حکومت د خپل گران او متدین پاچا په لارښوونه او قیادت د نوی ژوند ، پرمخ تگ او د ټولو خلکو ښیگڼی او هوسا ینی او ملی نیک مرغی

اراده کړی او په هغی لارکی په ټینگه زیار باسی نو موږ او تاسو ته هم لازمه ده چی د عالی انسانانو په څیر د

خپل ځان ، همنوع او هیواد د لوړتیا اوښه ژوند گټلو په لار کی کوښس وکړو او د هیواد په داسی مترقی چارو کی برخه واخلو.

ژوند یوازی د پیسو ، عزت رتبی او فردی لذت او خوښی گټلو دپاره سرته و نه رسوو بلکه د ژوند د عالی

هدف دپاره چی مراد څخنی د نورو خدمت د همنوع او ټولنی د نورو غړو سره مرسته همکاری او خواخوږی ده

تلاښ وکړو همدغه دی د انسانیت لوړ مفهوم او د انسانی کمال معنی او د

همدغه لاری څخه لوړ فضیلت گټل کیږی او انسانان عالی هدف ترلاسه کوی.

« ایوبی »

## طبعی حقوق

طبعی حقوق له هغو حقوقو څخه عبارت دی چی ډیر زاړه او نوی فیلسوفان ورته معتقد وه .

او دی چی له خدای دخوا وانسان ته ورکړه شویدی لکه د ژوند حق ، د مالونو د تحصیل حق او ددې حق چی د خپلی خوښی سعادت او د لذت په موندلو پسی وی.

طبعی حقوق د فرد د اصالت د هر ډول فلسفی د مرکزی هستی په ډول دی او ترزړو فیلسوفانو وروسته (بل واو) دا تلمسی پیړکه د فرانسوی ، انگریزی او امریکائی فیلسوفانو او وا کدارانو په وسیله سره راژوندی سول اد اکتشاف ئی د کړ

جان لاک انگریزی فیلسوف فرد د طبعی حقوقو د ساتونکو په ډول تصویر وی او دا نظریه د انگریز او د امریکا د لیبرالیزم مبنا شوه

په نوو پیړیو کی د مشروطیت ډیر زاړه سندونه چی طبعی حقوق ئی یاد کړی او د هیواد د حقوقو له اجزاؤ څخه ئی کړی وی

یو خو د ویر جینیا او پنسیلوانی

دایالت د حقوقو لایحه ده چی په ۱۷۷۶ کال کی مینځ ته راغله بل [د فرانسی د اتباعو او د بشر د حقوقو اعلامیه] ده چی په فرانسه کی په ۱۷۸۹ کال کی و لیکل شول.

ژباړونکی [ح]

# دقوانینو احترام



دقانون د فلسفې له رویه ټوله موجودات د یوه قانون تابع او یا په بل عبارت د ټولو موجوداتو نظم او نسق د قانون محصول ګڼل کیږي دغه لوی او عظیم موجود چې موږ هغه ته کائنات وایو یوه اساسي قانون ته اتکا لري بلکه انسانان قانون لري او حیواناتو لپاره هم قوانین وضع شوي دي دغه قوانین چې کائنات او ټوله موجودات ئې خپل تحت شعاع ګرځولي دي ځانله بیل بیل

اقسام او ماهیت لري نو ځکه ټول کائنات د قوانینو پابند او انسانان هم د قوانینو په عملي کولو مجبور او مکلف دي دوی برسیره پر دینې

قوانینو ځینو نورو قوانینو ته هم پابندي لري چې هغه د وقت او زمان په اقتضاء د فلاسفه او او حکماو له خوا د بشري نظام د بنسټ د ټینګولو

دپاره وضع شوي او همدا ډول حکومتونه د قوم د احتیاجاتو او د وقت او زمان د ایجاباتو سره سم ځینې قوانین وضع کوي چې د هغه په اثر د قوم سیاسي او مدني ایجابات تامین شوي

او دغه قوانین چې د دوی د احتیاج او د وقت د مقتضاء سره سم وضع شوي دي د دوی د ژوندون له سویې سره ډیر نژدې تماس او رابطه لري ځکه [مونتسکیو] وایي د هر قوم هغه قوانین چې د دوی د

احتیاج او تمایلاتو سره سم وضع شوي وي که یوه بل قوم ته نقل شي په صحیح صورت دا استنباط کیدای شي چې دغه قوانین د رانقل شوي قوم د پاره پردي دي]

مثلاً که د یوه متمدن مملکت قوانین چې هغه مملکت د ترقۍ اوج ته رسیدلی او هلته د تمدن هر ډول پلوشې خپرې شوي وي یوه داسې مملکت ته رانقل شي

چې هغه څو سوه کاله وروسته له خوبه راپاڅیدلی او په هغه کې د تمدن رڼا نه وي لویدلی طبعي ده چې د هغه قانون په ادراک کې

ضعیف او له هغه نه استفاده نه شي کولای او همدا ډول د یوه فقیر مملکت قوانین د یوه غني او ثروتمند مملکت د پاره نامکفي او

د دوی د ژوند له سویې سره مطابقت نکوي نو پدې اساس که چیرې د ملو قوانینو ته مراجعه وشي

د هر مملکت ټول طبعي اقتصادي، سیاسي او اجتماعي ژوندون د دوی له قوانینو څخه څرګندیږي ځکه چې

ویل شوي وه چې د هر مملکت قانون د دوی د سیاسي او مدني ایجاباتو مولود ګڼل کیږي.

نو معلومه ده چې قوانین د هر مملکت د نظم او نسق او د چارو د انتظام او د شخصي او اجتماعي حقوقو د تامین د پاره وضع شوي او د عمومي خیر او فلاح په منظور هغه

ته د عمل جامه اغوستل کیږي نو ځکه د قانون فلسفه داڅرګندوي چې د قانون داوامرو منل که څه هم حریت تهدید کړي حتمي دي نو پدې اعتبار قانون زموږ حاکم او موږ د قانون محکوم ګڼل کیږو یا په بل عبارت همدغه قانون دی

چې موږ ئې سمې لارې ته سوق کړي او له هغه اوږو پیچ څخه مو راګرځوي کم چې

[پاته په ٤ مخ کې]

# د انسان ژوند

## او

# واهمه

که څه هم د انسان نفسي ژوند د احساساتو، عواطفو، په تنګو ځنځیرونو کښې محدود واقع شوی دی او هر کله د دوی په ذریعه

باندی دفکری حرکت په تګ ډډو کښې ډیری سهوی او خطاګانی واقع کیږی لیکن تر ټولو چې دژوند په مداوجزر کښې زوروره

اغیزه اچوی هغه دماغی قوه ده چې دعلم النفس په دنیا کې د واهمې په نامه یاد یږی .

البته بی له واهمې څخه دژوند طبیعي بنیه ناقصه ګڼل کیږی مګر په واهمه سره هم اکثروخت دژوند په تکمیل کښې د نقصان لاره پیدا کیږی .

زه اوس نه غواړم چې دواهمې په تحلیل او تجزیه کې دعلم النفس له مخې ور ګیږم خو فقط مقصد مې

دادی چې داڅرګنده کړم چې انسان دخپل طبیعي حیات په دوره کې څومره دتوهم ترغلبې لاندې دی ددې لپاره

چې دغه مقدار سړی ځانته معلوم کاندی نو څه دلیل ته ضرورت نه وینم ځکه هر یوه انسان چې لږ څه وځانته متوجه شي، په ځان کې به وويني چې دده دفکراو منطق په مقابل کې توهم ترکومې اندازې غالب دی .

اکثره کسان دا فکر کوی چې زه دتوهم له چمبې څخه ژغورل شوی یم لیکن که ښه تراځیر شي په عوض ددې چې له یوه توهمه څخه خلاص

شي بیا دبل توهم تراثر لاندی واقع کیږی .

پدې نسبت چې خبری می ډیری اوږدې نشی نو

خپل قلم و هغې خواته دا ګرزوم چې ماته تر اوسه پوری د ځانی تجربې له مخې داردا ندی شو یدی او لیکنې ته ئې پدې حیث سپارم چې

زما لپاره یادداشت او د نورو لپاره ګوندی څه مفید وی .

دادی چې په مطلب پیل کوم :-

خوب لیدل زما په عقیده دډیرو نفسی رمزونو بهترین مظهر ګڼل کیږی او اکثره وخت هغه شیان سړی په

خوب کی وینی چې د نفس علاقه ور سره ټینګه وی .

پدې سلسله کښې هغه خوبونه به مولیدلی وی چې سړی پکښې ډاریږی داسې

[د دریم مخ پاته]

## دقوانینو احترام

دهغه په ارتکاب سره د قانون له خوا مجازات راکول کیږی همدا وجه ده چې قانون ته یو مطلق العنانه قوت ورکړه شوی او دهغه اوامر بیله استثنی د عملی کولو ډ ا ی دهغه متخلفینو ته باغیان ویل کیږی .

نو ځرنګه چې دقانون دسیادت په اثر فردی او اجتماعی حریتونه تامین او هر څوك له هغو شیانو څخه استفاده کولای شي کوم چې دهغه حد او معیار دقانون له خوا موږ ته ټاکل شوی دی لازمه ده چې د قانون د احترام په اثر د هغه اوامر مقدس بلل شوی او سرنوشت قانون ته تسلیم شي .

[ښاغلی اڅك]

خو بو نه اکثره وخت پدې
پوهېږو چې سړی د مخه څه
واقعه وینی او په اخر کی
پېر د باندی مرتبه شی. که دغه
حقیقت لږ په واضح صورت

را د مخه کړم نو تاسی وګوری
په کومه شپه چی خپسکه
مو نیسی نو د خپسکی تر نیولو
د مخه خوب وینی او علته
په خوب کی دغسی موجبه

ور ته وړاندی کېږی چی
خپسکه یی نتیجه راووزی.
پدې خصوص کښی زه
د ځان واقعات د بیانولو لپاره
تر هر څه مناسب ګڼم او اظهار
کوم یو وخت چی زه کوچنی
وم او د خپسکی په باره کی
می دا ناسما نو په تقلید د اعقیده

درلوده چی دا کوم مخصوص
پېری دی چی پر سړی باندی
پریوزی نو هغه وچی کله به
خپسکه راته عارضېده د مخه
به می یو داسی خوب لیدی
چی پېری د پېریانو کوم

یو ځای وی او زه په ناخبره
پوهلته مداخله کوم او
د ستی پرما باندی پېری
کښېنی اعضا می له حرکته
ولوېږی او آواز می تر خوله
نه خېژی. [۱]

اشتباه و نه کا ندی چی
پېریانان حقیقی وجود نلری
بلکه فقط دا ثابتول غواړو
چی خپسکه د پېری له خوا څخه
کوم آثر نه ښکاره کېږی څکه
دا حقیقت د نوی او زاړه طب

له مخی دوینو په جریان کی
کشف شوی دی بل وخت چی
می یو څه مطالعات وکړه
او د یونانی طبابت په کتابو
کی می د خپسکی ځینی علل

وبلتل نو کله چی به خپسکه
راته عارضیده په هغه وخت
کی به می خوب لیدی چی د
کومی خوایو بخار یا یخ راته

متوجه شی او په نتیجه کی د
خپسکی تر غلبی لاندی راشم
په او سنیو وختو کی می
د تحضیر الارواح د فن ځینی
مطالعی کولی او هلته می

و لیدل چی ځینی د مړو
ارواح د بیده سړی سره
کله کله علاقه پیدا کوی نو
هغه وچی د خپسکی په نسبت

می داسی خوب و لیدی چه
یو غیر مرئی روح یو پلاز ما په
بدن کی حلول وکړی او د
مړ په اثر زه له حرکته ولوېږم
په پای کی چی می وکتل هغه
د خپسکی اثر و.
لدی قبیله می ډېر واقعات

لیدلی دی چی هغه عیناً زما په
اوهامو پوری اړه لری زاد مخه
کېږی د خپلو چورتونو له مخی
واقعات د خوب لیدلو په وخت
کی را د مخه کېږی له دې ټولو
شیانو څخه دا حقیقت په لاس
راغلی دی چی انسان ډېر ډېر
واهمی مغلوب دی او هیڅکله
د دې قوی له سلطی څخه نه خلاصیږی
که له یو پوول اوهامو څخه خلاص
شی بیا په بل رقم اوهامو کښې
محدودیت لری او ژوند د وهم
وخوا ته تر هر څه ډیره برخه
ورا یستلی ده.

بناغلی [ت]

## (افکار)

یاداسی ځان ښکاره کړه لکه
چی یی یاداسی واوسېږه لکه چی
ښکاره یی.

«بایزد بوستانی»

د تبنتی لار د مخه تر پښی باید
وسنجول شی.

■

کم عقلان د تیرو زمانو څخه
خبری کوی هوښیاران پر حال
باندی فکر کوی او نیابان له آینده
څخه ګڼوی.

«ناپلیون»

رښتیا ووایه که څه هم تر خه
وی. «نوشیروان»

---

[۱] دلته باید څوک دا

ښاغلی لودین

# علم او ساینس په عالم

## اسلام کښی



پدې مختصره مقاله کښی البته ګنجایش نلری چی پر ساینس او فلسفی افکارو ژور بحث وشی خو بیا هم ما کوښښ کړیدی چی دځینو خو راسترو اسلامی ساینس دانانو ځینی نظریات په عمومی ډول ګرانو لوستونکو ته وړاندی کړم.

امید دی چی ګوندی مفید واقع شی.

زما په عقیده ددې اپاره چی دعالم اسلام لوړ مقام او د اسلامی سانس دانانو ستر موقعیت دعلم او ساینس په تاریخ کی ښه وپیژنو نو لازمه ده چی په لاندنیو شیانو اقلاً یو عمومی نظر واچوو.

[۱] داروپا او ایشیان عمومی تاریخ او دعلم او ساینس مرحلی دمخه تر اسلام یا فقط هغه وخت چی داسلام لمر خپلی لومړنی وړانګی خپری کړی؟

[۲] علم او ساینس څنګه په اسلام کښی او ترکومه حده پوری جذب کړی شوی.

[۳] څه انکشافات او نوی ترقیات دعالم اسلام لخوا علم او ساینس ته ور کړی شول؟

[۴] داسلامی علماؤ شرح حال او ددوی

علمی خدمتونه او نظریات دتاریخی چوکاټ دپاره فعلاً په دومره قناعت کووچی د مخه تر اسلام په اروپا باندی تیاره اعصار حکمفرما ؤ علم او ساینس په لاتینی او یونانی دواړو مدنیتونو کی خپلی آخرنی سګلی وهلی یوازی دبازنتین په امپراطوری کی تر یوې اندازې پوری علم او ساینس وقایه کیده او کلاسیک (قدیمی) پوهنی رواج درلود د افلاطون او ارسطو آثار به لوستل کیدل خو د بازنتین دامپراطوری په وخت دساینس او پوهنی په ساحه کی کوم نوی انکشافات ونه شول.

دمیلاد په اوم قرن باندی د اسلام مدنیت له یوې خوا دبازتین او له بلی خوادفارس په مدنیت باندی استیلا وموندله او دواړه مدنیتونه ئی په خپله پراخه او پالونکی غیږ کښی ونیول دخلفاؤ په مختلفو دورو کښی په علم او ساینس باندی مخصوصه توجه وشوله.

په ۷میلادی کښی دعباسی خلفاوو دوره دیوې باعظمتی اسلامی او علمی دوری په حیث ظهور وکړ.

پدې منوره دوره کی دعلم او ساینس دتوسعی لپاره یو ه خورا مساعده زمینه تیاره شوه د

یونانی آثارو ترجمه په عربی ژبه وشول لدینه پس علمی آثار پر له پسی له لاتینی او یونانی نسخو څخه په عربی ترجمه کیدل ددې دپاره

دفنی غیر اسلامی علماؤ کفایت په کار واچول شو.

دعباسی دوری اوم خلیفه [ مامون ۸۱۳-۸۳۳میلادی] په بغداد کښی یو مخصوص مکتب او یوه کتابخانه دآثارو د ترجمی لپاره مشخصه کړه.

هو نین بن اسحاق ددې مکتب له برجسته اشخاصو څخه و ده د یوناني ګیلن [معروف بیالوژی دان] آثار په عربي ترجمه کړل او ده

دشاګردانو په همت د تولمي او ارسطو آثار هم ترجمه شول.

بغداد دعلم او ساینس مرکز وګرځیده داسلامي خلفاؤ او وزراوو له خوا اسلامي او غیر اسلامي علماؤ

ته په مساوي ډول سره موقع ورکړه شوه چې یونان او نورو غربي نقاطو ته کوم چې دعلم او یا ساینس پخواني

مرکزونه او زانګوګانې وې سفر وکړي او علمي آثار راغونډ کړي.

په بغداد کښې لمړی وار د ارسطو آثار چې د علم نباتات، معدنیات او میخانیکه په باب کې و نشر او د استفادې

په معرض کښې کښېښودل شول.

وروسته تر اسلام د اکثرو یوناني او لاتیني علماؤ د

آثارو اصلي نسخې ورکې شوې وې نو عربي ترجمې د

عربي لیکوالو یوازنۍ مأخذونه ګڼل کیږي نو لدې څخه ښه معلومیږي چې عالم اسلام یوازې د ترجمې د پاره

څومره دقدر وړ خدمتونه کړیدي.

اوس راغلو دې ته چې عالم اسلام څه نوي انکشافات

د علم او ساینس په ساحه کې کړیدي؟

عالم اسلام نه یوازې د خپل مقدس دین او پاک

رسول [ص] د فرمایشاتو سره سم د علم د تحصیل د پاره لیري ملکونو ته مسافران ولیږل علم ئې ځانته د مقناطس

په شان جذب کړ بلکه نوي انکشافات ئې هم پدې پراخه ساحه کې وکړل نوی رنګ او کیفیت ئې ورله ورکړ.

د همدې نوي کیفیت په لحاظ چې اکثره غربي مؤرخین او لیکوال د اسلام د وره د ساینس او تفکر په تاریخ

کې د یوې مشخصې دورې په لحاظ پېژني کوم نوي کشفیات چې د اسلامي عالم

له خوا شویدي زه به یې د اسلامي علماؤ په شرح حال او

نظریاتو کښې بحث وکړم خو زه دلته دیو عمومي کیفیت تذکار کوم کم چې ډېرو غربي ساینس دانانو او مؤرخینو ورته د قدر په سترګه کتلي هغه دادی چې اسلامي ساینس دانانو او علماؤ تجربي لابراتوار او عملي تطبیقاتو ته په لومړني موفقیت قایل شول او د خپلو انکشافاتو اساس ئې په همدغو پخو تیږو باندې کښېښود.

---

## نن او پرون

زه ګرسره د خپل عمر د تیرسوو ورځو د پاره متأسف نه یم ځکه پوهیږم چې هره ورځ چې مې له لاسه څخه ووزي برخلاف ددې چې موږ ته په ظاهره ښکاره کیږي ما هغه ورځ په خپل تملک کښې نیولې ده او خاوند سوی ئې یم.

که زما د راتلونکو ورځو شمېر چې کرار کرار لږیږي په بدل کې یې د تیرسوو ورځو شمیر چې زما تر شا دي ډېریږي.

او دا هم باید هیر نکړو چې تیرې ورځې زما د پاره تر راتلونکو ورځو ډېر ارزښت لري ځکه چې ورځې تر اوسه زما په تصرف کې نه دي او په یقیني ډول په ما تر اوسه اړه نلري حال دا چې تیرې سوې ورځې خامخا په ما اړه لري او زما دي.

د ښاغلي [ح] ژباړه

# د طبیعت اسناد

څرنګه چې مځکه په میلیونو میلیونو کلونه عمر لري او دې پر ه قدیمه ځمځه پیدا سوې او دې پره زېږده نو هغه وخت چې د مځکې پر مخ د هیڅ ډول موجود اثر لا هم نه ؤ پیدا سوی یعنې نه انسان او نه حیوان موجود ؤ د مځکې کره موجوده وه چې په تېرو یدو سره د زمانې د مځکې پر مخ ځینې موجودات د مخه تر انسان پیدا شوه

کوم وخت چې د مځکې پر مخ هیڅ موجود نه ؤ نو موږ هغه زمانه څرنګه تصور کولای شو نو د هغه وخت د زمانې تصور کیده هم یو مشکل کار دی

لیکن د وخت پوهانو او عالمانو چې د غه موضوع یې تحلیل کړیده او په دغه باره کې یې ډېرې مطالعې کړیدي نو موږ ته داسې بیان کوي او وایې یعنې هغه وخت چې مځکه پیدا سوه ډېره ګرمه او حرارت یې زیات ؤ نو هیڅ ډول حیوان یا نبات د هغه پر مخ ژوند نسوای کولای.

که موږ هغه کتابونه مطالعه کړو او هغه نظریې وګورو او هغه فوسیلونه او هډوکي چې د قدیمې حیوانانو بقایاوې دي مطالعه کړو موږ ته دا راښکاره کوي چې حقیقت همدغه دی

نن ورځ کتابونه او تاریخونه لیکل شوي او تر مطالعې لاندې دي لیکن کوم وخت چې د انسان وجود نه ؤ هغه وخت څرنګه پېژندل کیږي څرنګه چې یو مؤرخ داسې وایي کوم وخت چې د مځکې پر مخ انسان نه وو پیدا سوی نو تاریخ څرنګه و لیکل شو ؟

[د پورته سوال په مقابل کښې موږ هیڅ تصور نسوای کولای که یا هم تصور وکړو د حقیقت ځخه به لیرې واقع شي او زموږ تصور به پر هیڅ کتاب اتکاو نلري فقط یو خیال او یو فکر دی چې موږ ئې د نقل په شکل سره بیانوو البته مطلق خیال او تصور هم ندی.

څرنګه چې موږ په دغه باره کې هیڅ کتاب نلرو چې هغه مطالعه کړو او د پخوانی شیانو ځخه خبر سو او هغه وپېژنو.]

لیکن خوشبختانه ځینې تجربوی اسناد موجود دي چې موږ ته د تجربې حقیقي درس راکوي او هغه د یوه کتاب یا یوه تاریخ په حیث مطالعه کوو چې عبارت دي د هغو ډبرو، حیوانانو، نباتاتو، غرو، رودوا و فوسیلو ځخه

چې نن ورځ یې په لاس کې لرو هغه واقعي لار چې موږ د مځکې د موضوع ځخه خبروي یوازې دا نه ده چې موږ تاریخونه او کتابونه مطالعه کوو بلکه بهتر یې لار ئې همدغه ده چې و حقیقي او طبیعي اسنادو ته رجوع وکړو او د هغو فوسیلو او ډبرو او حیوانانو د بقایاوو ځخه خپل معلومات حاصل کړو

هره ډبره چې د غره په لمن یا یو بل ځای کې واقع وي د طبیعت د کتاب یوه صفحه جوړوي که یو شخص وغواړي چې یوه ژبه زده کړي لومړی د هغې ژبې الفبا ضروري ده

په همدغه قرار که سړی وغواړی چی دطبیعت کتاب او اسناد مطالعه کړی لومړی بایدپوهېږی او فوسیلو ته دا بتدا څخه وپېژنی . که یو توبل شوی

او صیقل سوی ډبره په یو غره یا بل ځای کی وو ینو نو به حیران شو چی څرنګه صیقل سویده چی هیڅ څوکه

یا څنډه نلری که هره ډبره ماته وذره ذره کړو خو بیا به هم تیره او ر خداره وی لیکن نو موړی ډبره هیڅ تیره ځای نلری او که دغه

ډبری دیوې بلی ډبری سره مقایسه کړو هیڅ شباهت به نلری نو که موږ په ښه

دقیق صورت سره فکرو کړو نو به دا راته ثابته سی چی دغه ډبره هم یوه قصه او داستان لری .

چی دغه ډبری خپل شکل ماهیت په تجربوی صورت سره موږ ته بیا نوی او ښئی چی دغه ډبره په قدیم کښی

دیوی لوی ډبری دجنسه څخه وه لیکن دیوه عامل په سبب ماته سویده او درانوونکی د تیرو تیرو څنډو وه وروسته دبارانو د اوریدو په اثر او

په غرو کی دسیلا بو درا بهیدو له کبله یی جریان پیدا کړی دی دغه کوچنی کوچنی شیلی چی سره یو ځای سوی

او یوه وړوکی رودخانه یی جوړه کړی ده او دغه کوچنیو رودخانو بیا یوه لویه او وسیع رودخانه په وجود راوستلی ده .

دغه ډبری په دغه رودخانه کی داوبو تر جریان لاندی راغلی او هغه تیری تیری څنډی یی په تیریدو د زمانی

توږلی شوی بیا هغه میده او کوچنی ذرات چی څنګی جلا کیده کیدل هغه او بو ځینی یووړه په اخیر کی یوه صیقل سوی ډبره په وجود

راغله او هغه غیری منظمه ډبره په یو منظمه ډبره سره تبدیله سوه او بیا دبعضو

عواملو پواسطه د دغی رود خانی څخه د باندی راایستل شویده تر څو چی زموږ پلاس کښېووته .

که چیری دغه ډبره موږ نه وای پیدا کړی او دهغی رو دخانی څخه نه وای را ایستل شوی ممکن دغه ډبره تر دغه حالت نوره هم صیقل شوی او هم تر دغه

حالت نوره کوچنی سوی وای او بالآخره به ریګو به بدله سوی وای او درودخانی په ساحل کښی به یی رسوب کړی وای او کوچنیانو به دخپلو بازیو عامل ګرځولی

وای . کله چی یوه کوچنی ډبره وموږ ته دومره ډیر معلومات حاصلوی او درسونه را کوی که چیری دغه نور کائنات چی

عبارت دی دغرو ، رودو، درختو او نورو شیانو څخه دی په خپل وار نو رهم تر څیړنی لاندی و نیول شی څومره دعمل درس به را کړی

نو دپورته بیان څخه معلومیږی چی دمځکی دمخ کائنات پورتنی ذکرشوی شیان درلوونکی دتکامل او تحول دی چی دیوه عامل په

راتلو سره دشکله څخه بل شکل اختیاروی او ددغه تحول او تکامل سره سم دانسان فکرته دڅیړنی له کبله رشدورکوی او په هره

اندازه چی تکامل زیاتیږی په هغه اندازه سره دبشر په عقل کی زیاتوالی راځی .

او بشر دډیرو شیانو په پیدا- کیدو او کشفولو سره بریالی کیږی .

[پای]

نثار احمد (رمیا) ژباړه

د لواء الاسلام له عربي مجلې څخه

د بنا غلي سربن ترجمه

# رحم او عاطفه

زه غواړم چې يو خيالي شاعر شم يعني د قافيې او وزن په سکنجه کې زما فکر محصور نه وي زه غواړم چې د خپل زړه سره د حال په ژبه خبرې وکم - د اخبرې پرمادې گټه ندي بنا بلکه د رحم او عاطفې خبرې دي چې په مظلوما نو او بېوزلانو پورې اړه لري ·

تخم چې کرل کېږي څو مخکې يې اوبه پورته ؤ کښته نشي بېخي حاصل نه ورکوي همدغه رنگه په زړه کښې تر هغو پورې وعظ او نصيحت ځاى نه نيسي تر څو پورې چې د ټولو اجزاؤ او ذراتو سره ئې گډون او وکومې ته ئې شيوه نشي که حق و وايم د زړه يوې او پورته وو کښته کول غير له شعر څخه بل شى نسي کولاى اې سړيه تا ته وايم نيکبخته او د رحم او شفقت لرونکې او سه او زړه د ي له مهرباني او ځوانمردى سره شناخته کړه ·

بلکه د الاهم درته وايم تر څو چې په وس دي کېږي د رحم او عاطفې ټوټه ئې وکرزوه ته به وائې زه نيکبخته يم ولې چې د زړه په صندوقچه کې مې د نورو زړو په خير زړه شته چې له درد ؤغم څخه په خالي نه وي هو کمان کوم د غسې به وي مگر پر بېچاره او بې وزلو باندې رحم کوه ·

ورې مو ړه او لېږ يت کړه د ژړا اندو اوښکې وروچې کړه او د غمجنو بې وزلو پر سرو باندې د شفقت لاس تير که ·

زما جانه که کوم وخت د يوه بدبخت او پريشانه په حال خبر شې خپل هر څومره زحمت او مصيبت د د هٔ د مصيبت او زحمت په مقابل کښې لږ گڼه او حتى څو دې وس کېږي هېر کوه ئې ·

تا ته دې دا معلومه وي چې د هرې بد بختى او پريشانى دا ورېځو هاخوا ته د آسلى او خوشحالى برقونه لگېږي او د اخو مسلمه خبره ده چې نور د تاريکى له موجه څخه پيدا شوي دي او هرشى په خپل ضد سره پېژندل کيږي هياشت په نيمه شپه کې راخيژي او سهار د تاريکى له گهوارې څخه سر را پورته کوي يقين لره چې ټوله شوقونه او د ژوند نور لذتونه د مکررې خبرې په څير زاړه او بد - خوندې دي مگر يوازې هغه شيونه چې لذت پکښې پاته دي او هيڅ کله نه ځنې زائلېږي احسان رحم او عاطفه ده ·

د قانع او شاکر فقير منظره پدې اندازه سره زړه وړونکې او صفاده چې

بیان ئې نه کیږی

دسپاس نغمه ئې د معبدو تر نغمې لا زیاته نغمې کړه .

دلوېدلو لاس ونیسه او له بیچاره وو سره نیکی وکه یوه ورځ نه یوه ورځ که د دوی د کور له اړخ سره تیریدی دخپلی نیکنامی او مدحې بیان به په خپلو غوږوو اوری

دوی ېیله دی چې پتاخبر شی په غا ئبانه ټول به دی د اشرف المخلوقات او نیک انسان په ښو نمو سره یادوی د دوی دغه یادو نه ستا په باره کی

دخدای د رحمت طلب ندی نوځه دی ؟ او هغه لاسونه ستا دابدی او دینوی سعادت دغوښتلو په دعا پورته شویدی چې دبل په وینو ندی ککړ شوی او نه ئې دظلم په لاسو

دچار رمیږونه مات کړی دی نوته فکر وکړه دغه ر نگه خوشحالی او لذت په بل شی کښې ستة .

کاشکې ستا ستر کی د یوه غریب او بیچاره پسر مضطرب او پریشانه حال باندې یو ځو د رحم او عاطفې اوښکې توی کړی هغه وخت به نو داو ایم چې شکر دی د

انسانان په مینځ کی یو احساس او بشر دوسته څوک هم پیدا کیږی د استاعاطفه به له یوې خوا زما یأس په امید سره تبدیل او له بلې خوا به مې د کلو کلو له گرومه څخه خلاص کړی .

دغه اوښکی چې پر باڼو خوگانو باندې دی راگیلی شی په روښانه عبارت به دغه جمله د نور په قلم سره پر لیکلې وی [ته یو بشر دوسته انسان یې ] آسمان په ورځ ورځ

ژاړی او غټې غټې اوښکی تویوی زړه ئې د بر ښناد ځر کې د تکان او تصادم په واسطه سره لړ ه وېږی لرزیږی ځکه هم د باد له تیزو چلېدو څخه نالش کوی او دخروښانه سمندر د موجو د تلاطمه ای تکانو

څخه په لرز کښې ده په یقین ئې و منه چې د ماتم د آسمان او نالش د ځمکی د ښوزلو له ترحم او عاطفې څخه عبارت دی .

آیا پر موږ باندې دالا زمه نده چې د طبیعت داو لا د توب له وجه له دوی سره پدې لار کښې ملگری او همنو اشو او د بشر ېر لو پدلی رقت آواره حال باندې

وژاړو هغه لاس چې داو ښکو سیل راگرزوی او د مظلومانو پر زخمې زړو باندې د ترحم او عاطفې پوتکی پدی په زر ها واره تر هغه لاس فضیلت لری چې وینی

تویوی او کشت وخون کوی هغه لاس چې د غمناکه او دردمن زړه علاج کوی ښه دی تر هغه لاس چې نسونه ځیری زړه سوانـدی او احساس

انسان تر قاید مقدس او د نمانځنې وړ دی د اقضاوت نه یوازی زما قاصر ذهن بلکه هر دراک ذهن ئې کولای شی رحم او عاطفه به تاسو ته

یوه کوچنی کلمه په نظر در ځی مگر د لفظ او معنی په منځ کی ئې د ځمکی او آسمان په ځیر فرق دی .

کوم فیلسوف چې خپل ور کئ شوی راز د انسان په سینه او یا رحم لرونکی زړه کی پیدا کی نو په نتیجه کی به ئې سعادت او آرامی د جامعې په نصیب شی .

دخلکو د عاطفې او رحم څخه به د مظلومیت او مضبو لیت نوم د هستی له قاموس څخه محوه ده اړی او محبت کمیله به ټوله دژړا او نتلنوب کړه

به بارسی په عوض کښې به ئې خوشی ، محبت او اتفاق ځای و نیسی په یقین و پوهیږی چې پورتنې شیو نه به داسی محوه کی لکه د لمر به رڼا کی چې

ستوري محوه کیږي او یا ئې پهٔ را ختو د څراغ رڼا پیکه ایسي .

پاك خدای [ج] انسان د لوږې او سختۍ له پاره نده پیدا کړی بلکه روزي ئې د

کفاف پهٔ اندازه سره د ځمکې او آسمان پهٔ ما بین کې ورته

مقرره کړې ده دا رحمت چې له دوی څخه سلبیږي او یا بیچاره ګې مخه ورته

کوي یوا ځنې علت ئې تمرد

او د قوا او ضعف یو پر بل مسلطه کیدل دي چې یو ئې را او لاړ یږي

داد بل روزي پهٔ خپل ځان پوري منحصره ګڼي نو ځکه

کفران د نعمت ئې زوال د رحمت را ولیږي .

لدې جهته څخه نو مږ ی د تقسیم او ترتیب د ارزاقو

وشلیږي لهٔ یوې خوا څخه انصاف کمېږه پهٔ شا کېږه او لهٔ بلې خوا څخه د بد بیني تخم پهٔ زړو کې و کرل شو .

کهٔ بیا رحم او عاطفه پهٔ زړو کې وای خو بد بختي او محنت پهٔ له کومې خوا څخه مخه کوله .

فرد خو د جامعې یو جز

دی او د متعدد و صفتو لهٔ اختلاف څخه پا ځول شویدی نو پدې اساس سره انسان هغه وخت کامل بلل کیږي چې دا حقیقت ئې و پیژاندی او پهٔ زړه کښې ئې ځای ور کې یعنې

پهٔ ټوله معنې سره د اورته متیقنه شوه چې جامعه د ده د جسم او روح څخه عبارت ده نو هغه وخت ئې زړه له اضطراب او یا د مضطر بو

زړو څخه مضطرب او یا له سکو نو آرامۍ څخه ئې پرار امه کیدای شي د مخه مو وویله چې فرد له جامعې څخه عبارت دی .

بالفرض که هغه فردي مزی چې د ده او د جامعې پهٔ منځ کې قایم دي قطع کړل شي نو پهٔ بای کې به دی له جامعې څخه او یا

جامعه به له ده څخه او ر کوی ولی چې دا خو مسلمه خبره ده ( چې ټو لنه د ژوند مایه او د ټولو ګټو سرچینه ده مګر بالعکس فردیت

محوه کیده او د ژوندون لاس پر یوول دی ) دا هیڅ امکان نلري چې د نیکو کارو پهٔ رحم او عاطفه سره دی ذلت او بیوزلی تو ب محوه نشي

مګر چیری دې نیکو کاران او نیکو کاري د اسې خلک خو مې ډېر لید لی دی چې سره له ډېر لود احسان او نیکو کاري د قوا او کله چې ئې پر لاري باندي د

بیوزلو او غریبانو د کړو ژړا ندې منظرې ] تر ستر ګو شي پهٔ عوض کښې ددې چې ځه پهٔ متأثر شي له ډېره غرور او نخوت څخه د استهزا پهٔ نظر ورته ګوري یعنې د دوی ئې تر چار پا یو لا کښته او سپکه پهٔ نظر ورځي .

یله ډله بیا زوان سته چې پورته ئې ډله داسې ورته ایسي لکه ملکې .

دا بیا خپل سعادت د

عاجزانو پهٔ لځولو او ځورولو کښې ګڼي فقط د دوی مرام پهٔ ژوند کښې دادی چې مونږ دې آسوده یو بار مو دې تېر لی

او خر مو دې باروي نور دې نو پهٔ هیڅ نهٔ پوهیږو ( کهٔ دوی تبا کیږي هم ئې زمونږ پهٔ ځه کهٔ نه کیږي هم ئې زمونږ پهٔ ځهٔ د خدای (ج) پهٔ تقسیم قانع نهٔ وی

دریمه ډله د دنیا دا کرین دي چې فقط مرام ئې دادی چې پیسې ګټه او د مونږ ګټ پهٔ ځیر ئې ذخیره کو ومه

د مسکین پهٔ مسکنۍ ځان خبر وه ده د جامعې پهٔ خرابی سلام او ر اشه در شه ئې پهٔ مقصد وی .

[ نور بیا ]

# پوهنوال استاد «رشاد»

ښاغلی پوهنوال رشاد د کندهار پوخ لیکوال او مبتکر شاعر دی چې په نظم او نثر دواړو کې ابتکار او پخوالی لري آثار ئې د هیواد په اکثرو مجلو کې خپاره شوي او د ویونکو د زیاتې استفادې مورد گرزېدلی دی لکه څنګه چې د دې سیمې د سترو لیکوالو پېژندګلوي او معرفي د دې مجلې لومړنی وظیفه ده نو ځکه مود نوموړي سوانح چې د ښاغلي ښېنوا په قلم لیکل شوي ده سره له عکسه خپره کړه .



ښاغلی عبدالشکور [رشاد]

پوهنوال عبدالشکور [رشاد] د عبدالغفور خان زوی د حاجي محمد ایاز خان لمسی د محمد جان خان کړوسی د نیک محمد خان کوسی او د لکي صاحبخان کودی په ځېله بابړ د پښتو اودري ژبې پوخ لیکوال او نازکخیاله متین شاعر دی په «۱۳۰۰»ه ش کال د کندهار د ښار د بابړ و د کوڅې په یوه بډایه کورنۍ کې زېږېدلی دی په ۱۳۱۴ه کال کښې چې رسمي تحصیلات بشپړ کړه نو بیا ئې خصوصي تحصیلاتو ته په خصوصي توګه سره دوام پسې ور کړ .

پوهنوال رشاد پاخه افکار لري او د پښتو ژبې په ادب کې ئې ژورې کتنې او عالمانه څېړنې کړې دي د پښتنو او پښتو د تاریخ په روڼولو کې ئې ښه زیار ایستلی دی بر سېره پر دې پر و مضامینو چې پدې لاره کې ئې د هیواد په اخبارو او ادبي مجلو کې لیکلي دي ځینې مشهور تدریسي، ادبي او تاریخي مستقل آثار ئې هم په پښتو تألیف او یا ترجمه کړي دي چې د اقول د ده د علمي څېړنې ذوق په تېره بیا د پښتو ژبې د ادب او پښتو د تاریخ سره د ده تود مینه ثابتوي .

لکه څنګه چې د پوهنوال رشاد د خبرو لهجه ډېره سنجیده او متینه ده هم هغه شان ئې په لیکنو او شعر و نو کې سنجیده ګي او متانت پت دی که څه هم دی زیار باسي چې په خپل نثر او نظم کې د پښتو ژبې سوچه او لرغونی لغتونه او اصطلاحات را وړي چې لدې لامله کله کله په خپله هم مجبور یږي چې د داسې لغاتو او اصطلاحاتو شرح د خپلو لیکنو په پای [فټ نوټ] کې ولیکي خو بیا یې هم له اشعارو د یو اغیزناک پټ درد پته او ځرک لګي په تېره بیا د انساني مینې تأثیرات پکښې زیات لیده شي .

ښاغلی رشاد که څه هم په بډایه کورنۍ کې پیدا شوی دی خو او س نه یوازې بډای نه دی بلکه د ځینو پېښو پر خلاف د یوزلو سره د همدردۍ احساسات هم لري او د شعر په ژبه ئې د غریبانو پر حال ډېر ژړلي هم دي چې د ده د دې غریب پرورۍ د احساساتو د

نمونې د پاره به یوازې د دغه یو شعر کافي وي چې د [غریب زاکندن] تر عنوان لاندې ئې خورلس کاله پخوا ویلې دی او په ۱۳۲۶ هـ ش کال د کندهار د [طلوع افغان] په ورځپاڼه او بیا په ۱۳۳۵ هـ ش کال د کابل په مجله کې خپور شوی دی او اوس ئې د اتله له کابل مجلې څخه را نقلوو هغه شعر دادی :-

## غریب زکندن

الهي! ته مې حال وینې چې د زړه په وینو پایم
آرزو شوه د ژوند ختمه له تا تا ته په ژړایم

دا جهان د نامرد که دی په ارمان ورځني ئیږدم
څو کـ مې غوږ پر کړ و نه پو دی د اغر اله به تا ته پر ټهږدم؟

دغه ستا په رنګ جهان کې چې و دا نې بنګلې دی
د معمار د لاس تناکې د مزدور تودې خولې دی

دا ګلونه چې په بڼ کښې بهار ونه ترې ساز یږي
د باغوان د زړه په وینو آبیاري مومي غوړیږي

مګر وا کـ د بوئید وئې په قسمت د باغوان نشته
د مزدور غریب تماتو بې ستا پر مځکه آسمان نشته

لتهد لې مې په زړه کښې یو طوفان دارمانو دی
یو طرف د ځوانۍ مرګ دی بل حسرت د دې بیوړو دی

نه مې بنورې شته پر مځکه نه مې ستورې پر آسمان شته
یو بدبخت مې ژوند غریب یم د مې قدر پر انسان شته ؟

پر بستر دشګو پروت یم جامه نلرم په ځان کښې
نیمه ساده مې ځلیږي ستا درست ژوند په سامان کښې

ږوږي ولګهدل سوری شول په ژوندوني هلو پوست شوم
پوست بیا و چاودې له ځوله له یارانه څخه وروست شوم

ستر ګې تتې شوې له اوښکو کولمې وچې شوې له لوږي
پو ستوې مې په ژوندون کښې مچان ماشې میږي شپږي

ارو یدل مې په ورو کیغه چې دردونو له دواشته
د بشر په کنلو واله کښې درنځونو اطبا شته

زما بدبخت په نصیب نشول نه دواځه نه طبیب څوکـ
خسمانې ته مې رانه غلل د غم سر لره قریب څوکـ

هر څوک کرکه را څخه کاندی کوڅ شوی په غربت یم
کشکی نه وای پیدا شوی د بشر د کور خفت یم
الهی! زه هم انسان یم؟ چی می له بره دی څوک کور ته
یخ په مرګ هومره راضی کړه چی می سترګی څیږی ګور ته
وینی پاته له جریا نه ساه مړه شوه په بدن کی
ژبه وچه سترګی میښی پر تلخی د ز کندن کی
چاته وژاړم الهی! څوک می غوږ نیسی ز ګیروی ته
سپیدی چاودی ماینه ولاړه چی حمام تود کړی بی بی ته
ګلالی زویک می ریږدیږه ژړا پاڅید روان شو
دغریب دژوند میوه ده چی دخان د کور ګورو ان شو
آه د خوږو زړو درمانه! تا طاقت ورکړ هغوته
چی دغره کاڼی نی ګوری په حسرت وسختو زړو ته
که هر آه می زلزله ده ستا دعرش په بنیادو کښی
مګر آه تاثیر نی نشته د بیوا یو خلقو زړو کښی
آه نی مه یولی بیدردو! دمات شوی زړو ناله ده
له حسرته ډک داستان دی دغمو زو افسانه ده
ارمانو نه دی چی غونچی زما په هر مایوس کاته کی
په صورت د اوښکو راغلی دزړه وینی په لیمه کی

الهی! وتاته ژاړم په داتن تنهایی کی
وداع اخلمه له ژونده څینګر په هرځی کی

اوس می هر که پر مرګ د را ته غلی نه چا شمار کړم په سپړو کی
چی تر خوله می ساه وخوږی اختر ګوره په تربرو کی
دابی ننګه قام تباه کړی چی دورور په مرګ ښادی کا
کو نږه بیایی په میراث کی مراد بل په نامرادی کا
در په در په ګرزی خدایه! دیتیم په څوک غمخور شی
پلار نی تاور ځنی واخیست، مور نی مال د میراث خور شی
څوک نی اوښکی کا ږدو چی هو که نی نیسی په زړه پوری
څوک بی لاس کا د سر سیوری څوک بی خواته په رحم ګوری

دبیوز لو وزله ته نی د یتیم سپارم وتاته
دبیوز لو امید نشته ستا بی دره بلی خواته

الهی ! دا وروستۍ ساه ده زړه دروړمه رښکی
څوک مې سر ته ناست نه دی چې په مرګ کې مې توی کړی اوښکی
دغه نازمې خدایه یوسه ، لږ څه سوز ورکړه وزړو ته
دا وصیت د نامراد زړه دی په عشرت مستو کورو ته
د دولت په جام مدهوشو! په آرام سره دلښادو !
د بیوزلو حال غوږ باسی خبر اخلی د نامرادو
شکرانه د بصارت ده چې ړانده ترلاسو نیسی
د مړتیا شکرانه داده چې څه وږی په ماړه سی
اسپویلی زویو لونی چې په ناز سره روزی ته
لږ په زړه کړه د یتیمو څیری ګرالبی یبلی پښی ته
په چړ چوکښی دریاد کړه د بیوزلو زکندن څه
چې نه ژوند په ګیډه موړ کا، نې په مرګ وموند کفن څه
یوه ورځ که زما غنچه وی بیا ولاړه ستا آستان ته
له ساړو څخه کیږی اوتو سیږی ستا د ګلدان ته
لڅ له لوږی تاو تاو کیږی څوک ئې نه پریږدی پورچل ته
و پرې مه ترټه مغروره ، لږ غوږ نیسه کور بل ته
چې په آه د یتیم سوځی د بیدردو کور وکلی
په سیلاب د تودو اوښو رغړوی د کاڼو څلی

ښاغلی پوهنوال رشاد له ۱۳۱۴ هجری شمسی کال راپدې خوا د رسمی ماموریتونو مختلفی دورې تیری کړی دی تر ۱۳۲۱ ه ش کال پوری ښوونکی و په ۱۳۲۵ ه ش کال د ښاروالی د ټولنې رئیس او په ۱۳۲٦ ه کال د کندهار د ښاروالی مرستیال شو له ۱۳۲۷ ه کال څخه تر ۱۳۳۳ ه کال پوری په هند کی و په ۱۳۳۴ کال کښی د کندهار د مرستون مرستیال په ۱۳۳۵ ه کال د پښتو ټولنی مسلکی غړی او په ۱۳۳٦ ه کال د پښتو ټولنی د ریاست مسلکی مرستیال شو په ۱۳۴۰ کال کی روسیې ته ولاړی او د لیننګراد په پوهنتون کی د پښتو استاد مقرر شو اوس په کابل کی د ادبیاتو په فاکولته کی استاد دی .

ښاغلی رشاد په دری ، انګلیسی او اردو ښه پوهیږی له روسی ، هندی او عربی ژبو څخه هم پوره استفاده کولای شی په پښتو ژبه خوښه مهم آثار لری چې ځنی ئې چاپ شوی ځینی تر چاپ لاندی او ځنی لا همداسی بې چاپه پاته دی د ده مهم آثار دادی :-

[۱] لودی پښتانه :- دا کتاب په ۴۲۵ مخونو کی په ۱۳۳٦ کال د پښتو ټولنی لخوا چاپ شوی دی
[۲] د تولستوی دری نکلونه : دا کتاب ترجمه دی او په ۱۳۳۹ ه کال د هیواد د ورځپاڼی لخوا چاپ شوی دی
[۳] د زړه وینې :- منظوم اثر دی خو چاپ شوی نه دی .
[۴] د پېلتون ږغ :- » » » »
[۵] لاله :- » » » »

[پاته ئې په ۲۰ مخ کی]

ویران

# تحویلدار

که څوک جنسي وي که نغدي وي تحویلدار
مدام ملامت او شکېدلی وي خوار

تحویلداران بیا هم پوهېږي په دې ټکي
څېړني بیاسته چې موږ روڼ ټکي

هغه پېدې حساب کې نه راولم
زه‌ها شکېدلي تحویلدار یادوم

تر چپراسي ئې بالانده رتبه
دي یو بایسکل لري هغه‌وي پیاده

په دایره کې سر ګرځانه ګرزي
چاغوښتي نه‌وي دي دځانه ګرزي

بایسکل ئې بار وي لکه خر ورسره
پسې‌ئې بسته لکه بستر ورسره

دیرش یا څلویښت وي کتابچې ورسره
مدام ئې غم د «دوپارچې» ورسره

هر څه چې سي دده پر نوم حواله
دي ئې کوي اول داخېله پیاله

چې بار ئې در وندسي نو حیران پاته وي
خالي لاسونه پر میدان پاته وي

تل ګوښه ګرزي په‌سرا یو کې پټ وي
یا هم پښه په هدیرو کې پټ وي

داخو پېدي چې دخل وخرڅ نه‌وي سم
په هر قلم کې ئې خوږلي رقم

په ځواني ورسي په زړه تیا څنګ څي
بعضي په دغه وظیفه کې ومري

نه‌دي‌سي څوک د تحویلدار صاحب زوی
او نه‌دي‌سي‌دده په کورکې څوک لوی

څو چې دنیاوي درېږو باقي وي
دکا غذو او دمیزو باقي وي

ښاغلی ریدی

# په لوړ تیاپسی

زه هغه څلمی یم چې درومم په لوړ تیاپسی
څم له زاړه ژوند نه د نوی ژوند رڼاپسی .
کله اراده ملی جذ به غواړم څلمیانو کښې
روح د تحول او تجدد ای ارتقا پسی
درد د محبت زړه کښې دمینې شراره لرم
شپه او ورځ لیکیایمه ددې عشق په سودا پسی
سر کښې نوی فکرونه ژوندانه د آزادی لرم
څم له ظوا هرو حقیقت په لو معنی پسی
بند په ځنځیر ودرجعت هر څو که ترلی یم
مات به دا ځنځیر کړم د مقصد په مدعا پسی
ټوله کائنات په حرکت کښې تکامل کوی
زموږ کاروان رهی دی په بل لوری په فنا پسی
مـــخ د تشتت او د سیلاب نسم همت سره
څـــم پرلاری بیاد قوم په ارتقا پسی
زه لکه [ریدی] د قوم له غمه زړه پرهار لرم
هر چا نه داد رد غواړم نه گرځم په دوا پسی

✿✿✿✿✿✿

دمینې ناره

تر دا گران هیواد ځار یږم — دامی کور دامی مسکن دی
په نامه سره ئې نازیږم — زما د خپل نیکه مدفن دی
درس د مینې ئې را کړی — په شیدو کی خپلی مور دی
ما پر ځان دی فرض کړی — جدائی تر ینه پېغور دی
دا د لویو غرو لمن کښې — شین زمری یمه روزلی
سپېرو ترخو د وطن کښې — مهر ئې یم زیږیدلی
څو چې لوړ ئې وطنه — دامې هوډ په رشتیاده
څو می روح ځی له بدنه — زما سعی ستا لوړ تیاوه
له ځښتنه یې دی غواړم — ستا لوړ تیا پر جهان باندی
زه په دغه سره ویاړم — ښتانه دی خدمت کاندی
ستا له غیری نه پیدا زه — هغه ستا ښکلی [ریدی] یم
افسانه شوم د هر چا زه — اوس په تا سره ژوندی یم

د هند فیلسوف ټاګور

# خوب او حقیقت

ما ته لیدلی نه ئی! ستا خوب می لیدلی دی! له ما پوښتنه کوی خوب هم حقیقت لری معلومه نده ودې شی چی زه څه علم هم ولرم معلومه نده لیکن زما د جستجو انتها نشته زما په ژوند کښی ستا لټون ابدی دی .

زه پدې ژوندانه کی د کوم بل ژوند ون خوب وینم د استا په ستر ګو کی هغه ازلی جنت دی چی زه ئې وینم او خیال یې کوم .

د دغه جنت په ګلانو کی سپوږمۍ خپله لاره ور کوی .

هر کله چی زه د ژوندانه د دې ساحل نه تا ته ناری وهم ته له هغه غاړی جواب را کوی .

زه وایم د اتش ستا د ښو رارسیدل ؤ چی د ژوندانه د دې سراب د ساز په تارونو کی د ژوندون رنګین شر نګهار پیدا کیږی .

شاید دا محض ستا خوب دی زما خپله عقیده دغه ده !

زه پوښتنه کوم چی د خوب نه هم بل کوم لوی حقیقت شته ته چی زما د درد په کور کی اوسی .

ما ته نژدی او زښت نژدی هم دا ته ئې !

لیکن هو ستا دا ملګر تیا زما د ښو د ز ځیر ملګر تیا نده خوب د انسان د یو قسم آزادی صورت دی .

دستور وسره ، ګلانو سره او تا سره زما وصال په خوب کی وی .

ای په غیر او اجنبی صورت کی ځان ښودونکیه؟

تا پیژنم او که نه !

د استا لو به ده چی زما په ژوندانه کی کله د خوش نصیبی صورت غوره کوی او کله ستا د لو بو مقصد تش وخت تیرول وی ستا په تصور کی زه د تخیل په دریابو کی سفر کوم .

تا په خپل زړه کی په نوو نوو صور تونو کښی مصور کوم ګورم دی!

هو زما د پاره خو دا هر څه دی .

ځکه چی یو شی په زړه کی میندل حقیقت دی او په کوم شی قبضه کول هیڅ ندی .

ښه نو تا هم کله په خپل ځان کښی کتلی دی چی حقیقت څه شی دی د احقیقت که نه چا ته ور کوی نو په لاس کښی ئې ور ته ښودای سی .

هو دا کیدای شی چی د کوم مصیبت په وخت څه وخت چی د درد او غم د اور لمبی جګی شی نو د هغه لمبو په تیزه رڼا کی ته نا ځا په هغه و پیژنی دا کیدای سی .

کله چی د درد او غم شغلي پورته شی او ستا د نفس شو نډی اور واخلی رڼا پیدا کی نو بیا هم ممکنه ده چی ته هغه و پیژنی .

ستا په ژوندانه کی دا بی ـ اعتنائي لدې کبله ده چی ابدی ژوندلا ستا په نصیب شوی ندی نو ځکه د ځلورو واړو خواوو نه غږو لونکی خږه د ر با ندی او ښتی ده .

ستا [خپل ځان] په باطل لباس کی مخ پټ کړی بوخت دی .

زه وایم هغه چی کله کله پلاس راځی او هغه هم د خوب په عالم کی .

زه پو هیږم حقیقت هم دغه دی .

هغه پدې فانی عالم کی تل دی او تل وینش دی او د ابدی ژوند حقیقت په همدی کی دی وخت دی تیر شی د ښخوانی لو بی په کولو ی وخت تیر شی .

[نور په ۳۰ مخ کی]

د پېغلې ظاهره هاله په قلم

# د موزیک د پیدایښت تاریخچه د بربریت د دورې

څخه تر اوسه پورې



پېغله ظاهره [هاله]

موزیک د یونانی کلمې [میوزه] یا میوزا څخه منځ ته راغلی دی لغوی معنی یې د حقایقو تمثیل دی د هنری آلاتو د آواز په واسطه د موزیک د پیدایښت په برخه کې تر اوسه مورخین واحدی نظر یې نلری او دا موضوع تر اوسه تر تحقیق لاندې ده.

مورخین وایې چې د موزیک پیدایښت د انسانانو د بربریت د دورې څخه سرچینه اخلی پدې معنی چې د موزیک لومړنی دستی ۱، هغه وخت څخه منځ ته راغلی دی چې هغه عبارت د هغو نارو، او آوازو څخه و چې انسانانو د ښکار په وخت کې د خولې څخه راایستل په هغه زمانو کې انسانانو یوازې د وحشی حیوانانو ښکار نشوای کولای ۰نو مجبوره وه چې دستی او گروپونه جوړ ✿

«د ۱۶۵ مخ پاته»

## پوهنوال استاد رشاد

[٦] روڼې اوښکې: منظوم اثر دی خو چاپ شوی نه دی.

[۷] د یو ولسمې او دولسمې ټولگی لپاره د پښتو قرأت چې د معارفو د تدریساتو د ریاست له خوا چاپ شویدی.

[۸] د احمدشاه بابا د شهنامې تحشیه او تعلیق چې تر چاپ لاندې دی.

[۹] د پیښور د قصه خوانی د خونړی پیښې د راپورت ترجمه چې تر چاپ لاندې دی.

[۱۰] مکتبی قاموس چې له ٦م ټولگی څخه تر ۱۲ ولگی پورې د ښوونځیو د پښتو کتابو د پنځوشپږ زرو لغاتو تشریح ئې کړی ده.

[اوسنی لیکوال]

[د ۱۹۵ مخ پاته]

## خوب او حقیقت

داچې تاغولوی او غافل دی ساتی د دغو څخه مخ واړوه د تنگ او ر انگ د لیاری په گرد ته د ده د پښو د پلونو په شمار ه ولو وخت مه ضایع کوه او د خوشی تیر پدونکو ور څو خلی څخلی په څه شی.

اوس زه تاته څه ووایم چې څه به شی. بس داخوب دی چې پدې فانی کور کې غیر فانی دی او هر څه به بیوفائی وکړی.

دا بدی ژوند حقیقت په خوب کې دی د خپل ژوندانه څخه چې د کوم خوب به تعبیر کې تاسو بوخت ئې. هغه د لامتناهی ژوند لپاره ده.

دا بدی ژوند حقیقت په خوب کښې دی.

د «ط» ملا کنه

* کړی او په ګړه سره د لوړو آوازو په مرسته خپل ښکار نې کړی. پله نظریه داده چې انسانان ډلې ډلې د ښکار لپاره راوتل او کله چې به یې شی لاس ته راغی نو

مایوسه کیدل په دغه نسبت د هغه وخت په عقیده د ښکار رب النواع ته بې آوازونه ویل او دوعاوی یې کولی اما دا نظریه یوڅه

حقیقت ته نژدی ده چې د ماقبل التاریخ د دوری انسانانو به چې د خپلو خزو څخه کوم حیوان[ولیدی د نورو د خبرتیا د پاره به یې د وحشی حیوانانو ښکرونه

یا د فیلانو غاښونه یا داسې نور شیان سره ټکول او د دغو شیانو د آوازو په نسبت یوه ډله سره یو ځای کیدل او خپل خواړه یې لاس ته راوستل.

مطلب دادی چې د غږونو طریقه نې پیدا کړه کوم وخت چې د غږونو او آوازو څخه یې ولیده نو هغه نې وکړه چې د دغه کار د پاره فکرونه وکړی او نوی شیان پیدا کړی وایې چې د غسې غږونه او آوازونه کرار کرار ډیریدل او نوی نوی آلی پیدا کیدی څو چې پیړی په پیړی د انسانانو د استعمال له کبله د آلاتو غږونو تکامل وموند او میلودی ځانته منځ ته راغلی.

لکه څرنګه چې معلومه ده انسانانو د بربریت په دوره کښې د طبیعت هره قوه لکه سپوږمۍ، لمر، باد، باران، تالنده او داسې نور نې د هغه وخت د عقیدې سره سم د بیلو بیلو رب النوعو په

نظر کتلی او د هغه عبادت نې کاوه او د عبادت د پاره به نې مخصوصی نڅاوی او دعاوی کولی او د دعاو مراسم د مذهبی سرودو په شکل و چې د زمانی په تیریدو سره نې ښه شکل ځانته غوره کړ.

د مؤرخینو د وینا په اساس په پخوانی یونان کې د هغه عصر په عقیده ارباب النواع ډیر وه او موزیک هم یو د دوی څخه و چې هغه یې د مشتری دستوری نور او د علم او هنر ساتونکی باله.

د بشریت د تکامل سره سم داسې آلی پیدا شوی چې د هغو څخه نې د مذهبی اخترو خوښی او خواشینی په وختو کې استفاده کولی او د زمانی د تیریدو سره سم د غو آلو هم تکاملی دوری تیری کړی په پای کې دادی نن ورځ بیلو بیلو شکلو نو د انسانانو په لاسو کې دی.

نن موزیکدانان د دغه آلاتو او آوازو د طبیعت هغه ښکلا او رمزونه بیانوی چې هیڅ ژبه یې د ویلو قدرت نلری.

دا څو له هغه نظریې وی چې د موزیک د پیدا ښت د تاریخچې په باب په لنډه ډول تاسو ته وړاندی شوی.

[شلپاین] د شوروی اتحاد داوپرا یو نامتو سندرغاړی چې جهانی شهرت لری د موزیک په باب داسې وایی نامه ی کولای شی چې هره کلیمه یا هره خبره چې زړه مو وغواړی ولیکی.

مګر د هوا په غږ د بان ږغ نسی کولای چې په قلم سره راوړی یو ازی د موزیک ژبه ده چې د ویلو قدرت نې لری او بس.

موزیک د بشریت د عالم د پاره ډیر شاندار خدمتونه کړی دی، چې د هغو د جملې څخه یو څو مثاله د لته را نقلوو په دوهمه جهانی جګړه کی هغه وخت چې شوروی اتحاد او المان د سایبریا په سیمه کی جنګ کاوه.

د ډیر ایخ او لوړی په نسبت هیڅ ژوندانه امیند نه در لود

[پاته په ۲۳ مخ کی]

غلام دستګیر «سیملوال»

# د کندهار یو تکړه هنرمند



هنر او موسیقي په نړیه کې د بشر د پاره د داسې خدمت مصدر ګرځېدلې دی چې پر ځله ئې د انسانانو متمرد روحیات مطیع کړی او انساني مغز ئې د ناراحته افکارو د تسلط څخه خلاص کړېدی

چې دا نه یوازې هغه ئې تزکیه کړېدی بلکې هغوی ته ئې د روحي تغذیې له لارې یو معنوي قوت وربخښلی دی.

د ویښو او پر مختللو ملتونو یو بارز خصوصیت دادی چې د خپلو ملي هنر- مندانو د تشویق د پاره هر ډول تسهیلات آماده کوي او هر ډول ممکن وسایل د هغوی په اختیار کې ایږدي چې د دوی ملي هنر لکه څنګه چې ښائي په هغه رنګ او خوند تمثیل او ترویج شي.

زموږ په ګران هیواد افغانستان کې موسیقي او هنر هم یوه تاریخي او ځلانده سابقه لري او اوس هم موږ په خپل هیواد کې د معروفو سندرغاړو او مشهورو موسیقي پوهانو په وجود افتخار کوو او که چیرې موږ د هغوی په یوه تش تشویق باندې موفق کیږو نو دا به موږ د خپل ملي هنر په ژوندي ساتلو کې ستر خدمت کړی وي.

نو لدې کبله غواړم چې د هنرمندو ځیرو د معرفي په لړ کې ښاغلی عبدالرحمن [ حمیدی ] چې د دې محیط یو محبوب سندر غاړی دی درانو لوستونکو ته معرفي کړم او هیله لرم چې پدې وسیله د نوموړي د پېژندګلوي په برخه کې د ده د هغو علاقمندانو چې د دې ځوان هنرمند آوازئې اورېدلی دی آرزوی سرته ورسیږي.

ښاغلی عبدالرحمن حمیدی چې د مولوي غلام نبي زوی دی په یوه متصوف او متدین فامیل کې په ۱۳۲۹ کال د کندهار په ښار کې زیږېدلی دی خپل دیني تحصیلات ئې د خپل پلار په توجه د کندهار په محمدیه مدرسه کې



ښاغلی عبدالرحمن حمیدی

وسرته رسولی او وروسته تر هغه ئې د احمدشاه بابا په لیسه کې د شمولیت افتخار ګټلی دی څو د درو نیمو کالو په دوران کې ئې د [۱۲] ټولګي څخه فراغت حاصل او په ۱۳۴۶ کال کې د پوهنتون ته معرفي شوی او فعلاً د ساینس پوهنځي د دوهمې ټولګې د «مترولوجي» په رشته کې په تحصیل بوخت دی.

دی ځوان هنرمند تر اوسه پوري ازدواج ندی کړی.

ښاغلی حمیدی چې [۸] کاله وړاندې ئې خپل هنري استعداد لومړنی ځل اپاره

داحمدشاه بابا دلوسی پرسڅیج ونبود دهمغی نیڅی راهیسی دخپلو اوریدونکو په وړاندی زیات محبوب ګڼ څېدلی دی دادده هغه مفرط ذوق دی چی نن ورځ په خپل محیط کی زیات علاقمندان لری او اوس په کندهاری هنری ماحول کی دممتاز وسندرغاړو او په زړه پورو سندرغاړو په کتار کی راځی .

دی چی کله په پښتو اودری ژبو خوږی سندری وایی یا د هیواد دخپلوا کی دورځی په مراسمو کی د پوهنی دلوی مدیریت په کمپ کی دخپل خواږه آواز اومستعدی حنجری اوماهرو ګوتو په وسیله دخوښی لحظی په خپل هنر مندانه ځیر تجلیلوی داسی ښکاری ګوا کی دهر اوریدونکی او هنر خوښونکی په زړه درحم ټټوږ دی .

نوموړی په کندهار، کابل اوهرات کی یوزیات شمیر علاقمندان لری پرسیره پردې چی نوموړی یو مستعد سندرغاړی دی دموسیقی په آلاتو کی هم خاص مهارت لری اودده دادعا له مخی په هارمونیه هکو دریون تبله اوتنبور کی هم بشپړ لاس لری او دده همدغه څرګند هنری استعداد دده ممتاز محبوبیت اوهر اوریدونکی ته دتاوده استقبال موجب ګرځېدلی دی .

پیاوړی هنرمند ښاغلی حمیدی ویاړی چی په ډیرو هنری محفلو نواو کنسرتونو کې ئې برخه اخیستی ده دی د مرحوم غلام دستګیر شیدا اوښاغلی هم آهنګ ترلاس لاندی روزل شوی او اوس هم دهم آهنګ دسبک پیرو دی .

که څه هم ښاغلی حمیدی وپوې متصوفی کورنۍ ته منسوب دی بیا هم دهغه ذوق له مخی چی دموسیقی سره ئې لری په خپله هنری ساحه کی دزیاتو مشکلاتو احساس نه کوی دی وایی چی زه هنر د هنر لپاره غواړم نه د پیسو لپاره .

خودی عقیده لری چی دا یوه هنرمند ته دضرورت له مخی بدکار نه دی چی دیوې ټاکلی حق الزحمی په مقابل کی استخدام سی مګر و الې چی زما سره تراوسه پوری داسی احساس موجود نه دی .

زما منظور دخپل ملی هنر دژوندی ساتلو لپاره خدمت دی چی لدې امله دده ذوق او ځوان استعداد دموسیقی په هنر کی دستاینی وړ دی .

[د ۱۶ مخ پاته]

دموزیک د پیدا ښت ....

خو په هغه وخت کښی هم موزیك دستومانو او ناروغو خلکو خدمت ته رسیدی او هغوته به ئې روحی غذا او مصنوعی قدرت ورکاوه او دملیت او وطن دوستی حس یی ورژوندی کاوه نو ټوله سختی یی هیری کړی .

دغه موزیك و چی د فرانسی نوی انقلاب ته یی معنوی قدرت باښنه او خلک یی فداکاری او ایثار ته رابلل .

هیټلر [د خپلو افراد و د روحی تقویی د پاره د موزیك څخه کار اخیستی .

موزیك نن ورځ هغه لوی او عظیم قدرت دی چی د انسانانو سپیڅلی احساسات په هیجان راولی او د هغه په رڼا کی انسان لوړ کارونه کوی .

لنډه دا چی موزیك د خوشحالی او غم په وخت کی دانسان رښتیا نی ملګری دی دموزیك په جذباتو کی انسان د طبیعت معنوی خوندونه پیدا کوی په دغه ښکلی جذباتو کی دانسان روح لوړ پرواز کوی او د طبیعت ښکلاوی ښه تراوینی .

دانسان دروح دخوښی لپاره دموزیك په دادن هیڅ شی اغیزه ناك نه دی دموزیك دعالم بیان قلم نسی کولای .

مګر دا یوه خوږه جمله دګردوو پناقو اکتفا کوی چی موزیك د روح غذا ده او بس .

# د کندهار د کشف
## سوو لرغونو آثارو څخه

په ۱۳۱۴ش کال د احمدشاهي کندهار په یوه برخه کې د مرمرد ډېرې دوه خومه د مځکې څخه را وکیښل سوه چې په هغو کې دوې مرتباني چې یوه د سپینو زرو او یوه خاورینه وه وموندل سوې ددې مرتبانو په غاړه و یو یو ښکلی طلائي همېل هم ؤ چې د سرو زرو ګلان او پاڼې ئې درلودل او د یونان د نفیس زرګرې صنعت په اسلوب جوړ سوی وه [د امرتباني اوس هم د کندهار په موزیم کې سته] هغه وخت دا د سپینو زرو په مرتبانه کې یو څه پوس هډوکي او په خاورینه مرتبانه کې څه قدرا ېرې موجودې وې.

دا یو کشف ؤ چې وسو هر څوک پدې مطلب نپوهېږي چې د امرتباني پداسې حال کې چې یوه د سپینو زرو او بله خاورینه ده دا چې د سرو زرو همېلونه په څړول شویدي پدې کې مطلب څه دی ؟

نو څکه چې موضوع تاریخي ده او ډېره لرغونې ده هغه څوک چې د قدیم تاریخ سره آشنائي لري هغه ښه پوهېږي قدیم یونانیانو د [المپیا] د فتح وروسته هر کال جشن جوړاوه

په هغه کې ئې خوښي ؤ خوشحالي او سپورټونه کول دا جشن چې د المپیک په جشن یاد شو د قدیم یونان څخه په میراث پاته شو کله چې مقدوني سکندر شرقي مځکو ته راغی نو دا جشن دده په



په کندهار کې د کشف شوو مرتبانو هغه عکسونه چې یوه ئې د سپینو زرو او بل ئې خاورین ده

یوناني لښکرو او سردارانو کې د لته هم رواج ؤ څو چې ددې مځکو په لښکري مشرانو او خلکو کې هم معمول شو لدې وروسته تر اوسه پورې

هم د المپیک جشن په نړیه کې ژوندی پاته دی او په غربي ممالکو کې همیشه برپا یه کیږي.

پدې جشنو کې څه په قدیم وخت کې او څه په اوس وخت کې د سپورټي لوبو ډېرې مسابقې او نمایشات اجرا کیدل او اجرا کیږي - لکه اوس

چې هم سته او لومړې درجه خلکو ته کپونه ؤ انعامونه ور کول کیږي پخوا هم داسې د حکومت له خوا یو طلائي همیل ور کول کیدې [دغه په مرتبانو پورې چې څړیږي] کله چې به دغه همیل وړونکي او ګټونکي مړ شو نو دده سره به په قبر کې هم ایښول کیده.

نو هم دغه مرتباني چې په کندهار کښې

په ۱۳۱۲ کال له خاورو او کینل شوې دغه ځای هرو مرو دیوه بریالی او نامي لوبغاړي دقبر ځای دی چې دلرغوني افغانستان د المپیک په جشن

کې ئې دا همیلونه په جایزه کې کټلي دي چې بیا دده له مرګه وروسته ورسره ښخ شویدي دا چې دیوه سړي په قبر کې دالمپیک دوه طلائي

همیلونه ورسره وه ګمان کیږي چې په دوو جشنو کې به دلومړي درجې خلکو په ټل کې راغلي او دمسابقې د ګټلو دادوه همیلونه به ئې وړي وي.

دا چې دمسابقې وړونکی شخص به یوناني و که افغان قطعي حکم نسي کیدای خو دسکندر وروسته دده داخلافو

په زمانه کې دلته یوناني تمدن او کلتور وسعت پیدا کړی و او دافغانستان بومي شجاع خلک ددولت

په عسکري ټل کې درېدلای شوای علاوه پر دې دافغانستان دا خلي صنایع د یوناني

صنایعو سره بلکل ګډ شوي وه مثلاً "د افغانستان د هغه وخت زرګري صنعت د یوناني زرګري سره ډېر شباهت

لري ځکه نو دا خبره سړی قطعي نسي کولای چې دغه دقبر مړی به یوناني وي

که افغان کومه نښانی چې دغه مړی یا په بل عبارت د طلائي همیلو وړونکی څه

قدر افغانیت ته ورنژدې کوي هغه دادہ:

په قدیم یونان کې د مړو

سوځل چندانی رواج نه درلود بالعکس د هغه وخت په افغانستان کې دبودائي

د مذهب د ډېر رواج او پراختیا په وجه عموماً دلته مړي سوځل کیدل چې دا یو

ورځنی کار ګرز بدلی و. بدې وجه سړی پردې خوا زورا چولای سی چې ووائي

پدا مرتبا نو کې ایرې و هډوکې به دیوه افغان مړي وي او دهمیلو څښتن به هم دی وي.

[دهاروني ژباړه]

## سرګردانه روح

کله چې د چوپتیا او سکوت په فضا کې دمینې او محبت نوی زمزمه پورته سي نو ددردمنو زړو انتظار او دوصال خوشحالي هم ځای ونسي مګر سرنوشت د ځواني او وصال آرزوګانې په تورو خاورو ولړلي.

په وړه کتوب کې امید ښته چې د ننګلارومو ندل شي او ځلمیتوب هغه مقام دی چې سړی سعادت او خوشحالي پکښې مومي. اوزوړ توب هغه کړ کې ده چې د نیستۍ و دنیا ته خلاصیږي او دوېرې په تیاره کې سرګردان روح ورانسی تریخوالي ته پناه وروړي.

برائي وروو رود هدیري لخوا دتابوت دماتو دړو کړ چې غوږ وته رائي مګر ګړي په ګړي به بیرته راځنځه لیری کیده.

زه پوه شوم چې دا هغه تابوت دی چې دځواني بې انتها آرزوګانې د سرګردان روح سره په غیږ ورولي.



دشاعر روح چې دمحبت او ناکامیو ځخه جوړ شوی دی نو آیا له یوداسې موجود ځخه پیله فریاد او سرګرداني او ورځه انتظار باید ولرل شي؟!

زه، هوزه نه پوهیږم بوداسې روح چې په خپل غرور په کائناتو اوهستۍ لوبې کوي بیا هم ځرنګه دمینې او محبت په مقابل کې په ډېره آساني سرکوزه وي؟!!

[دمړوندټا کنه]

مخترعین وپیژنی :

پښتو کونکی حسام

# موریس د تلگراف پلار

موریس یو د لویو مخترعینو څخه دی چی وده ته د تلگراف پلار وایی ، دی ؤ چی دد غی لویی اختراع له کبله ئی د تاریخ په مسیر او لاره کښی د توجو وړ آثار او نفوذ پریښود .

د موریس د کار و نوزیاته برخه د نونسمی پیړی په لومړنی نیمائی کی پای ته ورسید او په همدغه پیړی کښی ؤ چی لویدیځه نړی د صنعتی انقلاب د چټکو تحولاتو تر اغیزی لاندی راغله ځکه چی د بخار ماشین موټر لرونکی کښتی او د اوسپنی لاری اختراع شوی .

موریس په لومړی سر کی یو هنرمند ؤ چی نقاشی ئی زیاته توجه جلبوله ، خو دا موضوع او کار د ده په گټه دومری نه تمامیدی . او حتی ځینی وختونه به د ډیرمفلسی او تنگدستی او لوږی د مرگ سرحد ته رساوه .

ویل کیږی کوم وخت چی موریس د بریښنا د وسایلو په واسطه د مخابراتی چارو د سرته رسولو په فکر کی و لویدی د ده لپاره ئی تازگی نه درلوده ځکه ده پخوا لا د خپل ورور په مرسته چی سیدنی نومیدی د اطفائیی



موریس د تلگراف پلار

موټرانو لپاره داو بو په پمپ او وروسته بیا د مرودو بروټراشلو ماشین جوړ کړی ؤ .

د ۱۸۳۲ کال دا کتوبر په میاشت کی موریس په اروپا کی تر درو کلونو سیاحت وروسته چی تقریباً د تحصیل جنبه ئی درلوده د (سالی) د کښتی په واسطه د امریکا متحده ایالاتو لورته روان شو په دې وخت کی په داسی حال کی چی د یو مسافر سره ئی د بریښنا په برخه کی خبری کولی یو ې دستگاه ته متوجه شو کوم چی نوموړی مسافر په اروپا کی رانیولی وه او د هغه تر تیت دار نگه ؤ چی د بریښنا

جرقه چی په نوموړی دستگاه سره لیږل کیدله د هغه د رسیدلو په وخت کی د سیم په بل سر کی لیده کیده موریس په همدغه وخت کی د ځان سره فکر وکړ که داسی وی

چی و کولای شی د بریښنا جریان د هری مطلوبی نقطی څخه دغځول شوی سیم له مدار څخه تیر کړی نو بیا دا دلیل نشته چی خاص الکترونیکی نښی چی مفهوم ولری ونه کړای شی په چټکی سره تر هری فاصلی چی وغواړی ورسوی .

خو په حقیقت کې دا لومړی ځل نه ؤ چې موریس دا رنګه نظریه ښکاره کړې بلکه ده تل په دغه برخه کې فکر کاوه.

څرنګه چې پخوا ده د برېښنا په باب یو لږ بیانیې ورکړې وې، او هم هغه وخت چې په پوهنتون کښې ئې تحصیل کاوه د برېښنا د رشتې سره زیاته مینه درلوده او دا عادت ئې ؤ چې ټول هغه نظریات چې په برېښنا پورې اړه لري خپل ذهن ته وسپاري، ضمناً په هم دغه وخت کې موریس د دغو نظریاتو په نظر کې نیولو سره پدې بریالی سو هغه علامې او رموزونه چې پیدا کړي ئې وه په ترتیب سره د یو ځای څخه و بل ځای ته نقل کړي چې دا ور پدلوو ړوی.

لنډه ئې دا چې موریس د[سالې] کښتۍ په واسطه د خپل او پده سفر وروسته د نیویارک په ښار کې په خپله اختراع پیل وکړ او هغه وختونه ئې د خپل ورور په کور کې تېرول او د کور د فرشونو پر مخ باندې د سرپو او مذابو موادو په پاشلو سره ئې د خپل ورور د ښځې د تکلیف موجبات برابرول په پای کې موریس په ۱۸۴۴عیسوی کال کې د نیویارک په پوهنتون کې د نقاشي او مجسمه جوړولو د ښوونکي په حیث مقرر شو، پدې وخت کښې موریس په سیاسي فعالیتو نو لاس پورې کړ.

لکه چې د نیویارک د ښاروال په حیث ده کاندید کېدل او بې نتیجې پاته کېدل د څه وخت د پاره د برېښنا په باب ده علاقه او مینه لږ کړه.

په هر صورت موریس په ۱۸۳۶کال کښې د خپل یوه همکار سره چې لیونارد دا نل ګیل نومیدی د خپل تماس د نیولو په ضمن کښې د هغې دستګاه په برخه کښې چې په قوي او کاملو بیټریو ئې کار کاوه زیات معلومات او اطلاعات ترلاسه کړه چې په حقیقت کې د موریس له پاره مهم او ارزښت لرونکي وه چې د موریس سره ئې په دغه موضوع کې مرسته وکړه چې د ریلې سیسټم یې د ټلګرافي علایمو د تقویې لپاره جوړ کړی په ۱۸۳۷ کال کې یو سړی چې الفرد ویک نومیدی د ده ملګری سو او د موریس په اختیار کې ئې زیاتې پیسې ورکړې څو دی وکړای شي د نقطې او خط د مخا بر اتو سیسټم چې په وروسته کښې د موریس په نامه و بلل شو او نن ورځ په ټوله نړۍ کې د استفادې وړ ګرځي جوړ او د نړۍ والو په اختیار کې کښېږدي.



د ټلګراف لومړی دستګاه چې موریس د ټلګراف پلار او له ډیلا اختراع کړه



د لطفی منفلوطی

له العبرات نومی عربی کتاب څخه

د ښاغلی نجیب ترجمه

۲

## یتیم

کله چی ماځینګه وعده ورسره وکړه نود ځلمی زړه چاوده شوی ویل ګرانه زما اوس پر تا پوره اعتماد پیداشو ولی چی له شانه څخه شریف او دعاطفی څښتن راته وایسیدی ددوکه باز اودروا غجن ګومان نشم دربا ندی کولای .

غوږونیسه زه فلانی دفلانی زوی یم د مهربانه خواخوږی پلار سایه می داوو کالو په عمر له سره څخه ایسته شوی ده کله چی فقیر او بی وسه پر میدان پاته شوم نوله اکاڅا نو څخه

یوه مهربانه اوبادرده اکا تر خپلی تربیی او روزنی لاندی ونیولم دذاتی عاطفی او مهربانی

له مخی ئې له خپلی ښکلی نازولی لور سره یوځای ویوی نیژدی مدرسی ته داخل کړم غوښته ئې چی زه بی تربیی او جاهل پاته نشم

له دغی ورځی څخه زما له دغی نجلۍ سره په زړه کی داسی مینه پیداشوه لکه دوروچی له خوره سره پیدا کیږی په دې مینه او محبت سره می د

پلار د هر ډول بدبختی په نیکمرغی بختی سره بدله شوه ځلکو به زموږ دواړو متقابل محبت ته په حیرت کتل هره ورځ به یوځای مدرسی ته تلو

اوراتلو اوما ښځین به مو همیشه د کور په انګړ کی لوبی کولی یا به مو په باغ کښی لکه هوسیه مونړی را مونړی وهلی دږ کتوب عالم ؤ هر څه

خوند کاوه کله به مو بیا دخوب په خونه کښی یادخوړو په عمومی اطاق کی دمینی ډکی خبری اودزړه خواله سره کوله مګر افسوس چی دغه خوشحالی نیکمرغه وخت دباد په شان والوت.

داد ضرورت له مخی د سرای په ځلورو دیوالو کی دبند بندی شوه اوزه د نڅلی بلبل په څیر سره دمهجوریت په تور ره تروږمه کی یوازی پاته شوم مجبور ه وم یوازی به سبق ته تلم اوراتلم کوم داسی ځینګ ملګری اوراتیر خواخوږی می نه درلودی چی دمه می ورسره

غلطه شوې وای او په دغه
محرومیت کې ئې لږخه د
زړه ډېرا کړی وای .

یقین وکړه چې زموږ د
هیڅې تړون داسې ټینګ و
چې بېله مرګه څخه بل هیڅ

طاقت له منځه نشو ای وړلای
ما به دژوندون ټوله خوشحالي

دهغې نازنینې په خوا کښې
تېرولې او د نیکمرغې رڼا
مې دهغې په وېړه خوله

خندا کښې موندله په رشتیا
چې دژوندون ټوله خوشالي
دښکلو نازنینو په یوه ګړي
وصال کې نغښتې دي زمادا
وینا به مېا لغه نه وي چې

دا دجنت دباغ حوره اود
باغ ارم دګلستان شاپېرۍ د
شرافت او عفت یوستره ټوټه
وه چې پاک څښتن زما

ومهربانه اکاته بخښلې او
دده کور ئې په رڼو کړی و
مګر هې افسوس چې دهر
بهار آخر خزان او دهرې
خوښې پای پردرد والم تمام

دې په وړوکوالي کې ددغو
اوسنیو تکلیفو او غمو زمانه
زما د پرون په څېر په یاد ده
ما ته هغه تیری ورځې داسې
ښکاری لکه اوس چې دې

هغه څنګه غوټۍ ده چې ترستر ګو
دوری ایسته کیږي چې زه ئې دا به
پر ناست وم او د کتاب پاڼې به مو سره
اړولې یا به مو درسمونو درسمو لو
مقابله کوله هغه تکې ټنې ونې

اود ګلانو څخه ډکې کیاري مې
نه هېرېږي چې یا به مو ګلان دسته
کوله او یا به مو دهغو ترسا په
سیوري لاندې ناسته کوله چېرګ
چرګوړی آرام کا وه د کوچنیوالي

وخت یو عجب دساده ګی وخت دی
دخاورو واړه، وړه، وړې ونه به مو
جوړ کړه او واړه، واړه اینښي
به مو پر شا او خوا راو ګرځول،

کیان به مو له بله ځایه څخه نیول
او په هغه کې به مو اچول چوغو کې
او یا نور بیوزلي مرغان به مو په
قفسو کې بندیان کړه وچغار و

ته به مو ئې چې په حقیقت کې د غم
غلبلې وی غوږونه نیوله تر دغه
وخته پوری زه هیڅ پوه نه وم چې
زما دا مینه دا کاله لوره سره د
خوروالي او ورورولي مینه ده

اوکه دعشق و محبت دپټ راز
رمزونه دې خودوم، ه و یلای شم
چې دا مینه بې طمعې مینه وه

ما هغې ته داوانه ویل چې تا زما
زړه ته را تېره خوښه ئې ځکه چې
دمهربان تره لور او د کوچنیوالي

ټینګه ملګری وه بل پر پدمه
چې زما پدې وینا سره ئې
ګلالی زړه آزار نشي حتی
په زړه کښې مې دا ټینګه

تصمیم هم نه وو نیولی چې
زه به خپل ژوند دهغې له ورځه.

سره تړم ولی چې په سل کې
سل دارا معلومه ده چې پلار

ئې په ماغوندې بدحاله غریب
هلک ته په ژوند کې ئې دخوښې
مخ نه دی لیدلی کله راضي
کیږي هیڅکله مې لدې څخه

داسې آرزو نه ده کړې لکه
یو عاشق چې ئې له خپلې
معشوقې څخه کوی زما ئې
ددې محبت یو بل راز محبت

وچې لدې او سنیو عادې
محبتو سره هیڅ نه تشبه
کیږي که مې رشتیا پوښتې
زما محبت د هغه بت پرست

برهمن یا زاهب په څېر سره
وچې د بت په وړاندې دعبادت
سر ټیټوي . څه سر دی ، رله ګرزوم
په دې ماپېن کې چې دخوب

وخیال حکم ئې درلودی نه
ډېری شپې وورځې تیری
شوی نا ځا په مې اکا ناروغه

اوهر ګړۍ ته قریب شو ناروغې
ئې ورځ په ورځ سختیده له ژوند

ځکه ئې پر مخ امید وشلیدی نو پدې وخت کښې ئې خپله میرمن راوغوښتله او د وصیت په ډول سره ئې ورته وویل زما دا نیت و چې ددې پوزلی

هلک آینده ژوندښه کړم خو افسوس چې ظالم مرګ موقع رانکړه نو اوس له تا ځخه ټینګ خواهش کوم

چې دخپل اولاد په خیر سره ئې په بغل کې و نیسه او د مهر و محبت لاس ئې پر تندی سر ور تیر وه مګر افسوس چې دې

وصیت هیڅ نتیجه ورنکړه د تره د مرګ مې لا خو ورځې

نه وې تیرې شوې چې وضعیت پر بل مخ واوښتی او داسې حال مې و لیدی چې د مخه

مې بیخی نه ؤ لیدلی په ژوند کې مې دلومړی ځل لپاره دا محسوسه کړه چې زه پدې

کورکې پردی او په دنیا کې

یو ترټلی شړلی بنی آدم یم یوه ورځ سهار زه پخپله کوټه کې د لوستو په تکرار بخت وم چې یوه سپین سری

خدمتګاره راغله او په ډېر تأثر سره ئې راته وویله

[برای ما ته ستا دا کاغذ یغی وویله چې ده ته به و وایې زه

دلور دور کولو او ودولو نیت لرم . نو ستا او سید ل له دې سره پدې کورکې نور مناسبت نه لری نه باید چې دوست و دښمن یو ځه و نه وایي

دژوند دډولو ضرور یا تو برابر ول دی پر ما دی خو ته له دې ځایه ځخه ولاړ شه او په یو بل ځای کې چې ستا له شان سره مناسب وی واوسیږه

خدای په رښتیا خو ښیږی چې دا خبری د تره وغښو په خیر سره زما پر زړه و لګیدلی یو څو کړی چپ شوم او دا ئې دیښتو بنا ما رانـو یرغل

راباندی راوی بیا می وهغې ته وویل دا ډېره ښه خبره ده ځکه چې خدای کړی وی هم هغې به وسی خدمتګاره چې ولاړه نو بی اختیاره مې اوښکې له سترګو ځخه جاری

شوی چې شپه شوه خپل ټول کتابونه مې په بکس کې واوډل له ځانه سره مې وویل زما په ژوند کې چې کومه نیک بختې

وه هغه دا ده اوس چې زما ؤ ددې په منځ کې د بیلتون پنډه پرده حایله شوه پس له دې ځخه بدزه په هیڅ شی پسی افسوس و نه کړم .

عرض دادی چې له کوره ځخه بیله خدای په امانی پټ راووتلم هیڅوک مې په ځان پوه نکړ

سیوا له دغی تحفی ځخه چې د تره لور مې پرکټ بیده وه او دا

په خیر-ځیر ورته و کتل بله تحفه مې له ځانه سره نه یو وړه دا زما ؤ ددې آخیرنی ملاقات ؤ یوه شاعر پدې مورد کښې ځه ښه ویلی دی :-

لعمرک ما فارقت بغداد عن قلی
لو اننا وجدنا من فراق لها بدا
کفی حزناً ان رحت لم استطع لها
وداعاً ولم احدث بساکنها عهدا

[ستا په عمر دې زما قسم وی چې ما بغداد د ناراضی له وجه ځخه نه دی پری ایښی لیکن بیله دې کومه لار نه وه داغم ما لره بس دی چې په سفر

ځمه او د په مخه ښه ویلو کوم ځوک راسره نشته .]

حال دا چې ددې ځای له او سیدونکو سره زما نږدې

تعلق د ډېری زمانی را پدیخوا قایم ؤ له هغه کوره ځخه جدا شوم چې ځو عمر مې په خوشحالی پکښې تیر کړی ؤ زما دا جدایی د بابا آدم

د جنت د جدایی په شان وه زه هم آخر له هغه کوره ځخه ترټلی شړلی او پریشانه وایستل شوم چې د سعادت شپې ؤ ورځې مې پکښې سبا کړی وې .

(نوربیا)



ملي قهرمان او د پښتو د ادبیاتو ځلانده ستوری خوشحال خان
(ختک)

# کار و عمل

چې محنت په ځان قبول کا راحت مومي
رنج و ګنج سره دا دواړه دي تړلي

✡✡ ✡✡ ✡✡

څوک چې ډوډۍ د دهقانۍ خوري
خواږه د حور و د مېلمانۍ خوري
چې بې په ظلم خوري واړه دي زهر شي
که سالونه د سلطانۍ خوري

# ثبات او عزم

نه سره سم دي واړه مېړونه
نه سره سم دي د هر چا زړونه
زړه هم هغه ګڼه چې لکه غر شي
که باندې راشي هزار غمونه

خوشحال ختک



د کندهار د شاه اشرف پارک په جنوبي برخه کي د مستوفيت ښکلې
دوه پوړيزه نوي ودانۍ چي په دې وختو کي په عصري
ډول جوړه شويده